

# د مهدي ظهور
# او
# معاصر وخت

مجموعة دروس

شيخ حسن التهامي حفظه الله

## د مهدي د نښو لنده پېژندنه او زمونږ مسؤليت:

(۱) د قيامت د نښو اهميت ، د مسلمان امت سياسي نقشه ، د هغو نښو پېژندل کومې چې د مهدي له ظهور څخه مخکې دي ، د بېلګې په ډول د اسرائيلو جوړېدل ، په مکه کې د ناشولته او غير واقعي مهدي سره بيعت ، د روس او افغان جهاد ، د عراق او ايران جنګ ، جزيرة العرب تـه د امريکايي ځواکونـو راتـګ ، پـه عراق او شـام بانـدې اقتصادي بندېزونـه لګېدل او داسې نور کارونه په احاديثو مبارکو کې پلټل او په هم دې ډول د قيامت د نښو په وضاحت کې د انصاف لاره غوره کول.

(۲) د مهدي له بيعت نه مخکې د علماؤ په لاسونو د بيعت اړتيا ، د کورونا مرض او د ټولې نړۍ د حالاتو په بدلون کې د مهدي د بيعت اړتياوې ، د مهدي لښکر ، امام مهدي او د مهدي د انصارو صفتونه او فضيلتونه بيانول.

## د قيامت نښو ته اړتيا:

د دين په څانګو کې ايمان ، اسلام ، احسان ، قيامت او د قيامت نښې نښانې بنسټيزه سيزونه دي ، چې په دې کې هر يو کار په خپل ځای باندې اړين دی ، اوس موجوده زمانه کې د پورته ياد شوو مسؤليتونو سره ، د مهدي د منځ ته راتلو پېژندل ، د خلقو پوهه ول او د حديثو د کتـابونو څخـه د علامـاتو د تطبيـق پـه پـار تشـريح او عوامـو تـه لـه پورتـه يـاد شـوو مسـؤليتونو سـره ، د قيامت او د قيامت د نښـو نښـانو اړونـدو کـارونو تـه رابلـل او د وخـت او حالاتو په اړه خبرول ، زمونږ له مسؤليتونو څخه دي. اوس د دې لپاره لاندې ياد شوي کارونه پېژندل ډېر اړين دي.

## پنځه سياسي پړاوونه:

محمد مصطفى عربي خاتم الانبياء ﷺ په صحيح احـاديثو کې د امت مسـلمه سياسي نقشه په پنځو مرحلو کې ياده کړې وه.

**لومړی پړاو:** د نبوت زمانه ، چې د نبوت د اعلان څخه تر وفاته پورې موده يې درويشت ( ۲۳ ) کاله وه.

**دويم پړاو:** د راشده خلافت زمانه.

**دريم پړاو:** چې پـه دې کې د بنو اميه دور ، د بنو عباس دور ، او د سلطنت عثمانيې او نور دورونه پکې شامل دي ، چې په دې کې به بادشاه په ميراثي ډول باندې ټاکل کېده ، خو بيا هم حکومتونو به د شرعي قوانينو ساتنه کوله.

**څلورم پړاو:** د ظلم بادشاهي ياده کړې وه ، چې کله د امت د سر نه د خلافت سيوری اوچت شوی ، او په مسلمانانو باندې کافرانو پنجې لګولي دي ، او اسلامي دنيا يې په مختلفو ټکرو کې ټکرې کړله او يو بل سره په اختلافاتو ، فرقو ، تعصب او غير شرعي قوانينو سره يې د امت د زړه نه د خلافت روح اويستلو.

(۵) حديث کې دې زمانې نه پس يوځل بيا د خلافت راشده وړاندوينه شوې ده ، چې د دې قائمېدل بـه د امام مهدي په لاس باندې کيږي او دغه زمانـه کې بـه د دجال راوتـل هـم کيږي او قتل کولو دپاره به يې حضرت عيسى بن مريم عليه السلام له اسمان نه راکوزيږي.

**د قیامت د نښو پېژندل: د قرآن او سنتو په رڼا کې د اسرائیلو جوړېدل:**

د سورة بني اسرائیل په دې آیت کې مفسرین[1] فرمایي چې په درېم ځل د یهودو بیت المقدس ته راتګ او د مهدي ظهور د عیسی علیه السلام د راتګ نښه ده ، لکه علامه بنوري د دې ایت لاندې لیکلي دي ( **وَقُلْنَا مِن بَعْدِهِ لِبَنِي إِسْرَائِيلَ اسْكُنُوا الْأَرْضَ فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ الْآخِرَةِ جِئْنَا بِكُمْ لَفِيفًا** ) **سوره بني اسرائیل (۱۰۴)** او تر هغه وروسته مو بني اسرائیلو ته ووئیل: په دې خاوره کې اوسېږئ ، نو کله چې د آخرت وعده راشي ، نو موږ به تاسو راغونډ کړو او راولو.

مفسرینو د قیامت د ورځې معنی ( د آخرت د وعدې ) په معنی اخیستې ده ، ځکه چې په اوسني وخت کې هیچا دا تصور هم نه کاوه چې یهودان به په فلسطین کې راټول شي. یو ځل بیا په درېم وار یهودو ته موقع مېلاوېدو سره د ټولې نړۍ یهودان به یو ځای ته راټولېدل پیل شي.

لیکن رسول الله ﷺ وسلم په حدیث شریف کې د قیامت د قرب کې د یهودیانو سره جنګ ذکر کړی دی. خو رسول الله ﷺ په حدیث شریف کې د قیامت ورځې ته نږدې له یهودانو سره د جګړې یادونه کړې ده. فرمایلي یې دي ( قیامت به نه راځي حتی مسلمانان به د یهودیانو سره جنګ وکړي او مسلمانان به یې ووژني ، حتی یهودي به د یوې ډبرې او ونې تر شا پټ شي او ډبره او ونه به ووایي اې مسلمانه! ای د الله بنده دا یهودي زما شاته پټ دی ، راشه هغه ووژنه ( صحیح البخاری )

لکه له احادیثو څخه معلومه شوه چې په راتلونکي وخت کې به له یهودیانو سره جګړه وي ، خو د هیچا په تصور کې هم نه وو چې په ټوله نړۍ کې خوار شوي یهودیان به راټول او متحد شي او بیا به  دوي ته د وحشت په مېدان کې په خلکو د لوبو کولو فرصت به ورکړل شي [ *ظہور مہدی اور فتنہ دجال، ص۱۵۵تا۱۵۹* ]

## د اسرائیلو جوړېدل او زمونږ مسؤلیت:

په اوسني وخت کې لکه څنګه چې په ټوله نړۍ کې صهیونیستان اسرائیل په تجارتي ، اقتصادي او معاشي ډګر کې مضبوطېږي ، هم دغه شان د مسلمانانو مسؤلیت دی چې خلافت جوړول خپل مسؤلیت وګڼي او د نورو دیني چارو په څېر په منظم ډول د امام مهدي د ظهور لپاره کار وکړي. لکه څنګه چې د دین او دنیا نور کارونه له زحمت او وسیلې پرته نه ترسره کېږي ، په همدې ډول په ټوله نړۍ کې د امام مهدي علیه الرضوان خلافت جوړول هم له ستړیا پرته ممکن نه دی. لکه څنګه د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه خلافت او د سیدنا عمر رضی الله عنه خلافت له کفارو سره تر جګړې وروسته پر پوره ډول جوړ شو. په همدې ډول د امام مهدي علیه الرضوان د خلافت وعده به له زحمت او ستړیا پرته نه پوره کیږي.

---

[1] علامه بغوي، امام ماتریدي، امام ماوردي، امام ثعلبي، مجد الدین فیروز آبادي، مولانا سرفراز خان صفدر او علامه بنوري.

## د قيامت نښې مهم رکن دي

## د مهدي ظهور، د دجال ظهور او د عيسی عليه السلام نزول:

لکه څنګه چې د دنيا په ډېرو چارو کې د هر څيز لپاره ځينې نښې وي ، همداسې د دين په چارو کې هم د هرې موضوع تر راتلو مخکې مهمې نښې وي. قيامت هم د کائناتو تر ټولو مهمه پېښه ده ، چې له مخکي به يې د مهدي ظهور ، د دجال راوتل او د مسيح عليه السلام نزول واقع کېږي. په همدې ډول د قيامت د نښو چې کوم تفصيل په قرآن او حديث کې موجود دی. دغه ټولو نښو کې د فتنو نه علاوه درې مهم رکنونه دي.

(۱) د مهدي ظهور (۲) د دجال راوتل (۳) د حضرت عيسی عليه السلام راتګ:

(۱) په قرآن کريم کې د حضرت عيسی عليه السلام د نزول له پاره چې کومه نښه بيان شوې ده هغه د اسرائيلو جوړېدل دي ، ځکه چې د عيسی عليه السلام او امام مهدي ترمنځ ډېر ژور تعلق دی ، او د دواړو تر مېنځ د زمانې په اړه ډېر لنډ وخت دی چې يو له بل به وروسته راځي ، له همدې امله په ځينو احاديثو کې راغلي چې له نزول وروسته به حضرت عيسی عليه السلام د امام مهدي عليه الرضوان شاته مونځ هم کوي.

نو دا به سمه وي چې ووايو هغه نښه چې په قرآن کې د عيسی عليه السلام د نزول لپاره چې بيان شوې ده. هم دا نښه په حقيقت کې د امام مهدي عليه الرضوان هم ده ، يعنی د اسرائيلو جوړېدلو نه پس د عيسی عليه السلام د نزول نښه او د حضرت امام مهدی عليه الرضوان د ظهور نښه د عيسی عليه السلام نه اول ده. ځکه امام مهدي به د عيسی عليه السلام نه وړاندې راڅرګند شي.

## په بيت الله (کعبه شريفه) کې د غير حقيقي مهدي ظهور:

**پېژندنه:** د زمانې په نښو کې دوهمه نښه په کعبې باندې حمله کېدل ، له احاديثو څخه معلومېږي چې د مهدي له ظهور نه مخکې به يو غير حقيقي کس د مهديت دعوه کوي. که د اسلامي تاريخ مطالعه وشي ، نو په مختلفو زمانو کې د مهديت ډېرې دروغجنې دعوې شوې دي ، خو دا ادعا به په بيت الله او کعبه شريفه کې کيږي. چې په مقابل کې به يې وسله وال اقدام وشي او د مکې بې حرمتي به وشي ، چې نقصان به يې د ټولې نړۍ مسلمانانو ته ورسيږي او تر ټولو نه لومړۍ به د عربي نړۍ د تباهۍ معنوي سببونه راڅرګند شي او وروسته به د بربادۍ بهرني سببونه هم راڅرګند شي. که د ناحقه مهدي په اړه احاديث د اوسني وخت په تناظر کې مطالعه وشي ، نو سمدستي د ۱۴۰۰ هجري کال د اول محرم په مطابق ۲۰ نومبر 1979 د سحر د لمانځه پېښه په ذهن کې راځي. په يوه حديث کې د دغو دوو پېښو يادونه شوې ده:

**( حدثنا الوليد بن مسلم، عن صدقة بن خالد، عن عبد الرحمن بن حميد، عن مجاهد عن تبيع، قال: سيعوذ بمكة عائذ فيقتل، ثم يمكث الناس برهة من دهرهم، ثم يعوذ عائذ آخر ، فإن أدركته فلا تغزونه، فإنه جيش الخسف )**

**ژباړه:** رسول اللهﷺ فرمايلي دي چې يو سړی به په مکه کې پناه واخلي خو هغه به ووژل شي بيا به خلک څه زمانه انتظار اوکړي. له دې وروسته به بل کس راشي ، نو رسول الله ﷺ

وفرمايل: اى مخاطبه! كه تاسو ته د دويم كس د بيعت كولو زمانه ملاو شي ، نو كم نه كم د هغه په خلاف لښكر سره مه يوځاى كيږه ، ځكه دا لښكر به په ځمكه كي ننوځي.

**وضاحت**: په دې روايت كې نبي كريم ﷺ مونږ ته د مهدي د ظهور يوه لويه نښه د زمانې په اړه كې بيان كړې ده ، چې يو سړى به د حقيقي مهدي له ظهور نه څه موده وړاندې راڅرګندېږي. چې هغه به سمدستي ووژل شي ، څه موده وروسته به بل كس راښكاره شي او هغه به اصلي مهدي وي ، نو دده مخالف كاروائي كولو او لښكر كي ملګرتيا نه ځان وساتل شي.

پورته روايت **ثم يمكث** كلمه كې د ثم له توري څخه دا معلومه شوه چې د اصلي او غير حقيقي مهدي تر منځ وقفه به په لندمهاله توګه د مهلت وركولو لپاره وي ، ځكه چې عالمان ، حاكمان د وخت ، او ولس د خپل ځان د تصحيح او د حالاتو د سموالي په اړه د حديث الفتن مطالعه وكړئ.

په داسې حال كې **ثم يمكث الناس** له دې جملې څخه معلومه شوه چې د ظهور مهدي لپاره يوازې هيلي كول كار نه وركوي ، ځكه چې د يو څه په انتظار كې د مناسب وخت او د مناسبو شرايطو ښكته اړخونه باندې پوهيدل هم يو مهم او اساسي عامل دى.

## د مهدي له ظهور څخه مخكې نړيوال جنګونه:

**عن جبير بن نفير ، قال : قال جبير : انطلق بنا إلى ذي مخبر رجل من أصحاب النبي ﷺ فأتيناه، فسأله جبير عن الهدنة فقال: سمعت رسول الله ﷺ يقول: ستصالحون الروم صلحا آمنا، وتغزون أنتم وهم عدوا من ورائكم.**

**ژباړه:** له حضرت جبير رضى الله عنه څخه روايت دى چې ما له رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چې ته به له روم سره د امن نه ډكه سوله وكړې ، بيا تاسو او روم به يوځاى به د دښمن سره جګړه كوئ. [سنن ابى داؤد]

له احاديثو څخه معلوميږي چې د مهدي له ظهور نه مخكې به د عربو او عجمو او عيسويان او مسلمانانو به د يو بل سره د يو طاقت په مقابل كې متحد شي ، په هغه كې به مسلمانانو ته فتح ملاؤ شي ، خو عيسايان به د خيانت په كولو سره پر مسلمانانو حمله وكړي چې په ځواب كې به بيې مسلمانان هم پرې حمله وكړي.

په نورو روايتونو كې راغلي دي چې تور بېرغونه به له خراسان څخه پورته كيږي او هيڅ ځواك به يې د بيت المقدس ته د رسيدو مخه نشي نيولى ، په ځينو رواياتو كې د دغو بېرغونو عراق ته هم د تللو ذكر ميلاوېږي ، او په ځينو كې سوريې ته هم د تللو ذكر مېلاويږي ، او په رواياتو كې د دغو بېرغونو د اختلاف له امله د ختمېدو يادونه شوې ده. همدا ډول په رواياتو كې راغلي دي چې امام مهدي عليه الرضوان له دغو تورو بيرغونو څخه دى. ځيني داسې هم روايات شته چې د مهدي له ظهور نه مخكې به ډېر بېرغونه وي او د يمن بېرغ به په دغو بېرغونو كې تر ټولو نېغې لارې والا وي ، ځكه چې هغه به په مستقيمه توګه خلكو ته امام مهدي ته بلنه وركوي.

نو د همدغو رواياتو په رڼا كې د عربو مسلمانان او عجمي مسلمانان له امريكې سره يو ځاى شي او روسيې ته ماتې وركول او بيا د امريكا پر افغانستان او عراق بريد كول او د عربو د عراق او سوريه كې اوږده جګړه كول او په اوسنيو حالاتو كې په خپل مېنځ كې په اختلافاتو

اخته کېدل زموږ د سترګو په وړاندې د مهدي د ظهور نښې دي ، چې په مکمله توګه پای ته رسېدلي دي.

## پر عراق او شام بندیز لګول:

د صحیح مسلم روایت دی چې د مهدي له ظهور مخکې به په عراق باندې معاشي او اقتصادي بندیزونه اولګي ، او څه موده وروسته به په شام کې خوراکي او اقتصادي بندیزونه ولګول شي. له دې وروسته به د امام مهدي ظهور اوشي. که د دې حدیث په رڼا کې وکتل شي ، په عراق کې لومړي ځل د ۹۰ء په مېنځ کې بندیز ولګېدو ، چې له امله يې په عراق کې په میلیونونو خلک د لوږې او بې وسی له امله مړه شول. بیا له ۲۰۱۱ کال وروسته د عرب پسرلي په نوم احتجاجونه روان شول او تونس ، مصر ، لیبیا ، یمن او سوریه يې ونیوله ، خو په شام کې دغه انقلاب نور هم ډېر سخت شو ، چې تر اوسه پورې پای ته نه رسیږي. په داسې حال کې چې له ځینو روایاتو څخه معلومیږي چې د مهدي له ظهور مخکې به په شام کې د ماشومانو له خوا روانه شوې جګړه به یوازې د امام مهدي له ظهور وروسته پای ته رسیږي. باید یادونه وشي چې د شام روانه جګړه هم د ماشومانو له خوا پر دېوالونو د شعارونو د لیکلو له امله روانه شوې وه.

له مهدي سره له بیعت مخکې په بلاد الحرمین (سعودي عربستان) کې د شاهي کورنۍ ترمېنځ اختلافات

له مبارکو احادیثو څخه معلومیږي چې د مهدي له ظهور نه مخکې به د شاهي کورنۍ د دریو کسانو تر منځ د بلاد الحرمین د خزانې او د بیت الله د حکومت پر سر اختلافات روان شي ، د دې اختلافاتو ختمیدل به دا وي چې حکومت او خزانه به درې واړو کسانو کې به یو ته هم ملاؤ نشي. په دې وخت کې به د عربو قبیلو تر مېنځ سخته وینه تویېدنه او ډله بازي جګړې رواني شي. او تور بېرغونه به راشي چې په هغه کې به امام مهدي وي. له همدې امله په بلاد الحرمین کې له شاه عبدالله وروسته د شاه سلمان په واکمنۍ کې د شاهي کورنۍ ترمېنځ سخت اختلافات روان شوي دي.

جزیرة العرب ته د کفري ځواکونو راتګ ، د عراق او شام محاصره او نه ختمېدونکې جګړه اوس د مقدسې خاورې په لور رو رو رانږدې کېږي. په داسې حال کې چې په بلاد الحرمین کې د شاهي کورنۍ تر مېنځ خپل منځي شخړې ، وژنې ، په هیواد کې دننه او باهر هر مخالف لوري او عالم سره ظلم کول ، د دې له امله سلطنت اوس د ماشومانو د لوبې په شان برېښي. له همدې امله د آل سعود حکومت د خپلې مذهبي او بهرنۍ اسلامي پالیسي له امله په هر ډګر کې د اسلامي امت په خلاف په هر ځای کې نوي صورتونو سره راڅرګندېږي. په کوم کې چې د ویژن ۲۰۳۰ په نوم د سینماګانو په دویم ځل پرانېستل ، د فحاشي شروع کېدل ، د بتانو نصبول ، د اسلامي رسم سپکاوی او د ښځو ازادي شامله ده ، په هوټلونو کې د شپې تېرولو لپاره د نا محرمو ښځو راوستل ، د شرابو ترویج او د یهودیانو او عیسایانو حرم ته د ننوتو اجازه ورکول پکې شامل دي.

## د قیامت د وخت په نښو کې د عامو غلطیو د مخنیوي قرآني منهج:

الله تعالی په قرآن کریم کې د قیامت او د قیامت د نښو په اړه د کفارو او مسلمانانو په ځواب کې په یو ډول وېنا کړې ده ، په دې کې دوه وېناوې ډېرې مهمې دي:

**لومړۍ وینا:**

د قیامت وخت لپاره یې څه متعین نېټه نه ده بیان کړې ، او نه یې ددې په اړه د سوال ځواب ورکړی ، له سره د دې سوال کول یې هم ندي خوښ کړي. ځکه چې د قیامت راتلو متعینه نېټه یواځې الله جل جلاله ته معلومه ده ، لکه څنګه چې په حدیث د جبرائیل کې ده. ځیني دیني کارونو ځواب ورکړی شوی دی ، خو چې د قیامت راتلو په اړه سوال **(متی الساعة )** اوشو وفرمایل چې ماته معلومه نه ده **( لا أعلم )** سره یې ځواب ورکړو ، بلکې داسې یې وفرمائیل **( ما المسؤول عنها باعلم من السائل )** چې لکه څنګه پوښتنه کونکي جبرائیل ته د قیامت ده راتلو په اړه صحیح معلومات نشته ، دغسې چې چا نه سوال شوی نبي کریم ﷺ ته هم له دې څخه ډېر معلومات نشته ، ځکه چې دا عامه خبره ده چې جبرائیل امین به له الله تعالی له طرفه د غیبو خبرې رسول اللهﷺ ته راوړلې. نو لکه څنګه سوال کونکي جبرائیل ته علم نشته دغسې چې له چا څخه پوښتنه شوې هغه ته هم علم نشته.

**دوهمه وینا:**

الله تعالی ته دغه خبره هم خوښه نه ده چې خلکو تیاری نه وي کړی او قیامت پرې راشي او دوي ته مهلت هم مبلاؤ نشي ، بلکې د دې دواړو خبرو په مېنځ کې یو بل طرز ته یې هدایت فرمائیلی دی ، او د دې لپاره اساسي رکن قیامت او د قیامت علامتونه یې په قران او حدیث کې بیان کړي دي ، ځکه چې د نورو اعمالو طرف ته رابللو په شان دغه رکن ته رابلل او تیاري وشي. پورته بیان کړې شوې دواړو خبرو کې د اعتدال لاره پرېښودلو له کبله درې ډلې جوړې شوې.

**لومړۍ ډله:**

د هغه خلکو ده ، کوم چې د قیامت او قیامت راتلو نه اول د مهدي ظهور ، د دجال راوتل ، او عیسي علیہ السلام راکوزېدل یو دم د راتلو په انتظار دي ، دوي سره دلیل دا ده چې اصل دینداري په ایمان او عملونو کې ده چې مونږ مونځ ، روژه ، زکات ، حج ، معاش او معاشره په اسلامي ډانچې کې واچوو او عالمانو ته هم پکار ده چې د خلکو سوچ دغه ځای له راولي ، امامت ، خطاب کول ، او د معاشرې اصلاح په اړه خلک او خپل شاګردان پوه کړي او چې الله تعالی کله د امام مهدي ظهور اوکړي نو بیا به دوي د امام مهدي مددګار جوړ شي او عیسي علیہ السلام سره به ملګري شي او د دجال خاتمه به اوکړي.

د امام مهدي په راتلو سره د کارونو په اړه رابلل په اصلي مانا نا امیدي او مایوسي طرف ته بوتلو په شان ده. نو ځکه دغې خبرو نه ځان وساتلی شي ، ځکه قیامت او د قیامت نښه ده مثال په توګه امام مهدي او نور کارونه به په خپل وخت باندې راځي ، اوس نه دغه کارونه کول صحیح نه دي.

**دویمه ډله:**

هغه خلک دي ، کوم چې قیامت او د قیامت نښې په اړه بحث کول او په اصلي کې د دې لپاره یو وخت مقرر ګڼړي ، دوي په خپله هم دغسې کار کوي او نورو نه دغسې مطالبه کوي چې مولوي صېب! هسې کوم د امام مهدي د راتلو وخت دی ؟ او دغسې د امام مهدي په اړه پوښتنه کوي چې اوس زماني کې داسې سړی څوک دی.

<u>**تبصره:**</u> دغه دعوه د قرآني منهج نه خلاف ښکاري ، رباني وینا ده **( فَهَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّا**

**السَّاعَةَ اَنْ تَأْتِيَهُمْ بَغْتَةً )** یعنې دا خلک یوازې دې ته په انتظار دي چې هغه قیامت به ناڅاپه راشي. په دوهم ځای کې ارشاد فرمایي **( فأنى لهم إذا جاءتهم ذكر هم )** کله چې د قیامت ورځ راشي ، نو نصیحت منل به دوی ته به څنګه ګټه ورکوي ؟ په بل ځای کې ارشاد فرمایي **( فقد جاء اشراطها )** د قیامت له ورځې مخکې د قیامت د نږدې نښې څرګندې شوې دي ، نو باید له دوې د کتو څخه عبرت واخلي.

له دې څخه معلومه شوه چې د قیامت د ورځې د نښو له لیدلو وروسته نېکو کارونو ته مخ کول د قران کریم حکم دی او په دې اړه اعتراض کول مناسب نه دي ، علت یې دا دی چې زمونږ کار عمل کول دي ، دا زمونږ مسؤلیت دی چې سخت کار وکړو. دا زمونږ کار نه دی چې وخت وټاکو او یا دا امام مهدي په اړه وخت وټاکو.

**دریمه ډله:** هغه خلک دي ، چې د قیامت د ورځې په نښو ځان پوهه کوي او پخپله هم پرې عمل کوي او نور هم دې عمل ته متوجه کوي. دغه ډول فتنې پېژندل ، له دې فتنو څخه د ځان ساتلو او نورو ته هم د هغې فتنو نه ځان لرې ساتلو لپاره پوهاوی. دوې د مهدي له ظهور لپاره خاص وخت خو نه ټاکي ، مګر د مهدي د نښو په ظهور پورې علم لوستل او دوي دا خپل مسؤلیت ګڼړي چې دغه مسائیلو څخه راوتلي مسائیلو باندې بحث وکړي ، دوی د امام مهدي تعین خو نه کوي ، هو ، البته ، د مهدي د نښو لټه خامخوا کوي.

<u>تبصره</u>: دا طریقه رسول الله ﷺ په مبارکو احادیثو کې بیان فرمایلي ده ، او لکه څنګه چې د خلافتِ راشده خبره نبي کریم ﷺ بیان کړې ده ، لیکن دېته عملي جامه حضرات خلفاء راشدینو ورواغندوله ، او دوی نه عمومي اعمال ورته پرېښودل ، او نه دوي ورته د وخت یا د سرې ټاکل وکړل ، بلکې د شرعي مسؤلیتونو په کولو کې اخته وو. او د خاصو اعمالو په اړه یې د نبوي ﷺ ارشاداتو له مخې خپلې تګلارې جوړې کړې. او په عمل سره یې د اسوة حسنة په شان یې یو مثال جوړ کړ. دا خبره د قرآني منهج ، د بدر د صحابو له عملونو او د پخوانیو لومړیو اصحابو له ژوند څخه ثابته شوې ده.

## یوه مشهوره پوښتنه او د هغې ځواب:

د قیامت د نښو او د مهدي ظهور پر تړاو د امت ستر علماء ولې چوپ دي ؟

**ځواب:** زمونږ پوهانو ته چې د دین کومه پوهه الله جل جلاله په خپل فضل سره ورکړې وه ، په دې کې د وختي غوښتنو په اړه سم د دیني خدمت د کولو مسؤلیت د دغو ښاغلو سره وو ، د ېېلګې په توګه ، د ازادۍ د جنګ وراندې دوي د دین او نړۍ په ډېرو برخو کې په منتشر ډول له هر کار لپاره مرسته کونکي وو.

خو د ازادۍ د جنګ پر مهال یې ټول مسؤولیتونه پرېښودلي وو او یوازې د انګرېزانو دشمني یې خپل هدف ټاکلی وو ، او له ښکاره ناکامۍ وروسته هماغه د انګریز دښمني یې په فکري ، دعوتي ، سیاست ، لیکوالۍ او په نورو طریقو کولو سره د دین خدمت او د کفر کرکه د خپل ژوند اصلي محور وګرځولو. په اوسني وخت کې د مسلمانانو حالت ، د کفارو له خوا د اسلامي هېوادونو اشغال ، په خپلو سیمو کې د مسلمانانو وژل او د هغوي نسل وژنه یوازې د اسلام د جرم په خاطر ده ، د کشمیر او فلسطین په اړه درواغ او رشتیا جوړول او د کفر په حق کې نتیجه بیانول ، له عراق وروسته لیبیا ، سوریه او یمن د مسلمانو ښځو د وژلو او له یو

بل سره د جګړې صحنه ورانده کوي. په داسې حال کې چې د افغانستان څلوېښت کلن زخم لا هم د ملت په زړه کې د نشتر په توګه ژوندی دی.

د دې حالاتو حاصل دا دی چې کفر د امت مالونه لوټ کړل او خپل کارګران یې پر هغوي مسلط کړل، چا چې د امت له سرونو څخه د خلافت سیوری لرې کړو، چې له امله یې اوس په هر ډګر کې په لکونو ځلي سخت کارونه کیږي، خو ګټور نه دي.

د دین او نړۍ د واقعي پرمختګ راز د ټول اسلامي نظام په جوړېدو کې پروت دی، په هغه صورت کې چې له فرد څخه تر ښار پورې او له هېواد څخه تر ټولې نړۍ پورې اسلام د واقعي کامیابۍ د امن څخه ډک ضمانتي دی. د هغه جوړول د سختې ستړیا پرته نشي جوړیدی بلکې دغه وېنا د عقل خلاف هم ده. نو پکار ده چې د حالاتو نازکتیا ته پام وکړو، د حالاتو ته په کتو او قرآن موافق ګامونه پورته کول پکار دي.[1]

**یوه پوښتنه:** د دین د نورو کارونو په شتون کې د فتنو او د مهدي د ظهور په اړه یو نوي کار روانولوته څه اړتیا ده؟

**ځواب:** د افراطیت نعرې او له هغو څخه راوتلي کارونو د امت روح زخمي کړی او د بدن هر اندام یې فالج کړی دی، د دې لپاره که په ټوله نړۍ کې هم په مختلفو لارو د دین سخت کار روان وي، او هغه هم د خلافت په غیر مستقیم تطبیق کې یقینا ګټور تمامیدای شي، چې په کې ډېر لوړ عزم، باوقار، ځواکمن او لوړ عقل او ذهن پکې ګډون کړی دی، په هغه کې د دعوت او هدایت کارونه، د روح اصلاح، د الله په لاره کې جهاد، تعلیم او تربیه، فتوا او تصنیف پکې شامل دي. او په غیر مستقیم ډول د خلافت د جوړولو لپاره ډېرې هلې ځلې وشوې. خو د اقوام متحده په شتون کې کفري طاقتونه دا نه خوښوي چې دا کار جوړ شي.

د عقیدت څخه د باندې کله چې د دلیل په ژبه د باور لرونکي خلکو په وړاندې یوڅه د دلیلونو په رڼا کې وړاندې شي او د ورځې په شان ورته روښانه شي، نو له دې وروسته هغوي ته نه هیڅ مقام او عهده د حق منلو څخه منع کولی شي، نه مال، نه عېش او نه زور او نه د ظالم ظلم او زیاتی او فساد، او نه د ملت او وطن د خلکو او نه د کورنیو پروا کول.

خو هغه کسانو لپاره چې عقیدت لري، د دلیل ژبه هیڅ حیثیت نه لري، او یقینا د دوي په وړاندې دلیلونه هیڅ قیمت نلري، بلکه د لمر روښانتیا څخه سترګې بندول به هم د توري شپې په شان ګڼل کیږي. همدا ډول مال، عیش، مقام، دین، مذهب او یا ذلت، د استدلال ژبه د لفظي توري په توګه سره منل کیږي. مګر د زړه څخه قبلول یې دوي ته ګرانه

[1] د دې لپاره د حضرت مولانا یوسف لدهیانوي کتاب (عصر حاضر حدیث نبوی کے آئینے میں)، د حضرت مولانا سید حسین احمد مدنی کتاب (الخلیفة المهدی فی الاحادیث الصحیحہ)، او د حضرت مولانا بدر عالم میرٹھی کتاب (ترجمان السنہ څلورم جلد) امام مهدي علیه الرضوان په عصري تحقیق او حواشي سره چاپ شوی دی، د مولانا سید یوسف بنوري محدث العصر لخوا د داسې فتنو د مخنیوي لپاره یوه جوړه شوې اداره، او د هغوی پېژندنه او د فتنو معاصر ډولونه له بشپړ تحقیق سره د حضرت په کتاب (دورِ حاضر کے فتنے اور ان کا علاج) کې کتلی شئ.

ده. ځيني داسې کسان هم شته چې له پورتنيو عيبونو څخه پاک وي اولني کارونه پکې نه وي ، مګر په دوې کې د زړه وېره او طبيعي وېره وي نو د دوې اعصاب دوي د دليل منلو ته نه پرېږدي ، مګر د دوي په مخ کې د دليلونو انبار د سرو زرو ډېرى نه دى ، بلکې د ايرو ډېرى دى. ځيني خلک بيا د نوي قانون له جوړېدو څخه وېرېږي ، هر نوى شى د دوي لپاره زهر وي ، اګر چې دا خبره نوي نه بلکه ډېره زړه به هم وي ، په هرصورت ، دوي ته نوي کېدل د باور پرته کېدلو دليل دى ، په داسې حال کې چې د داسې خلکو کموالى نشته ، هغوي لپاره خپل عادت پرېښدول لکه د غر خوزولو په شان ده.

د مثال په توګه دوي چې کله د دين او يا د دنيا يو کار خپل کړي نو له دې څخه اخوا کېدل د خپل استقامت خلاف بولي ، نو په اصل کې استقامت نه بلکه دوي ته خپل پوخ عادت پرېښودل ګران وي ، دغه شان د ځېني جماعتونو په نظر يواځې دغه دين دى چې کله کوم کار يې روان کړو بس هم يواځې دغه کوي ، د وخت سره روان کارونه ، د حالاتو په بدلون او د زمانې د چکر سره چې کوم کارونه کول پکار دي دوي دپاره نور د دين کارونه کول ډېر ګران دي.

په داسې حالاتو کې څرنګ چې نيکو اعمالو ته د امت پام کول بې حده ضروري دي ، په دې توګه د خلافت کوښښ او ستريا هم د وخت د حالاتو نه معلومېږي. لکه څرنګه نبي کريم ﷺ په مبارکو احاديثو کې بيان فرمايلي ، چې د نبوت دور ، د خلافت دور ، او کاټ کولو والا بادشاهي ، او زور او زياتي حکومتونه نه پس به بيا خلافت د نبوت په طرز جوړېږي. چې خليفه به يې ( امام مهدي ) وي.

او د امام مهدي تعين دپاره د شريعت هم هغه طريقه ده ، هغه اهل حل و عقد يا هغه علماء چې يو کافي خلکو د خپل ژوند ، مال ، هجرت او جهاد بيعت ورسره کړى وي ، او هغه حضرات چې د حالاتو په ارزښت پوهېدو سره بايد د زمانې او فرصت له مخې د زمانې ، مکاني ، سياسي او شرعي نښو او شخصي نښو په رڼا کې د امام مهدي د لټون لپاره د امت رهبري وکړي. نو دغه کارونو لپاره په مستقله توګه د پوهاوي لپاره سخت د کار ضرورت دى.

## له مهدي سره د بيعت کولو څخه وړاندې د علماؤو مسؤليت:

تر له ځمکه يوازې په هغه چا تنګېدل چې د الله تعالى اطاعت کوي ، او د الله جل جلاله پر باغيانو فضل او کرم ، د حاکمانو پر وړاندې د ديني خلکو د ژبې سلوک او د هغوي په زړونو او ذهنونو کې د هغوي کرکه رسول الله ﷺ د مهدي د ظهور مهمې نښې بللې دي. تر دې مخکې به د ظالمو پاچاهانو تختونه او تاجونه به مات شي او د شکست ښکار به شي. [صفة المهدي ، ابو نعيم الاصفهاني ، رقم : ۲۸ ] څکه چې د دين اولې کړۍ په ماتېدلو کې د شريعت نه خلاف فيصلې وي. [ رواه احمد ، رقم : ۲۱۱۳۹ ]

او د دغې ماتې کړۍ جوړېدل به امام مهدي عليه الرضوان کوي. مګر د تطبيقي طرز نه کېدلو له وجې چې نن امت مسلمه د کومو مرحلو نه تېرېږي ، هلته هغو احاديثو ته هېڅ پام نه کيږي چې د سند او متن له خوا قوي وي ، په هغه کې د نبوت د لومړۍ دورې ، د راشده خلافت ، د سلطانانو د دورې او د خلافت له ختمېدو وروسته بيا د خلافت د جوړېدو په اړه احاديث شته دي ، ډېر دلائيلو څخه معلومېږي چې د امام مهدي د بيعت نه مخکې به د علماؤو پر لاس باندې بيعت کيږي ، په دې حالاتو کې د دين د بيا غلبې لپاره د الله تعالى له

لوري د راشده خلافت جوړېدل او د مهدي ظهور نږدې دی ، په هغه کې به د عمر بن عبدالعزیز نه زیات انصاف ، سخاوت او د مال ډېروالی به وي.

د نړۍ حاکم ذوالقرنین د یاجوج او ماجوج پر ضد څو ځله اسباب استعمال کړل ، لکه څنګه چې په قرآن کریم کې په واضح ډول ذکر شوی او بیا یې له خلکو څخه د مرستې غوښتنه وکړه ، ( فَأَعِينُونِي بِقُوَّةٍ أَجْعَلْ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ رَدْمًا ) کله چې د نړۍ د پاچا ذوالقرنین په پاچاهۍ کې د یاجوج ماجوج په نوم د دښمن پر وړاندې د وسائیلو ضرورت له قرآن کریم څخه ثابته شوی دی ، نو د ټولې نړۍ د بادشاهۍ د بیا جوړولو لپاره به څومره وسائیلو ته ضرورت وي.

اکثره علماء د احادیثو له مخې د مهدي ظهور او د هغه پر بېعت خو باور لري ، خو وایي چې موږ د داسې مهدي په تمه یو ، چې الله تعالی به یې د بېعت لپاره د ځینو علماؤو په زړه کې واچوي ، نو امام مهدي علیه الرضوان به د لکونو حاجیانو په مېنځ کې وپېژني او بېعت به ورسره وکړي ، پرته له تیارۍ په ټوله نړۍ باندې به ورته واکمني میلاؤ شي ، او په ټوله نړۍ به په اوو کلونو خلافت قائم کړي ، د قرآن ، حدیث او سیرت له مطالعې څخه معلومیږي ، هغه وخت چې اولوالعزم انبیاء علیهم السلام او د نبوت دوره ، او د راشده په خلافت کې د نصرت الدین کار او ملاتړ له ډېرو سختو پړاوونو څخه تېر شوی ، نو دلته به ناڅاپه خلافت څنګه قائم شي ، په داسې حال کې راشده خلافت د کوم کشف ، او یا د کوم لوی ولي ، او مشر په دعا نه ، بلکې د منظم عمل په واسطه جوړ شي ، نو د مهدي خلافت به هم د دې عمل په نتیجه کې جوړیږي.

نو له دې څخه معلومه شوه چې له مهدي پرته خلافت او له انصارو پرته د مهدي وجود مشکل دی ، ځکه چې مهدي به له انصارو پرته له دومره لویو طاقتونو څخه څنګه جګړه وګټي ؟ تاریخ ثابته کړې ده چې په لکونو کسان موجود وي چې بېعت کول غواړي خو کم کسان بېعت اوکړي ، پداسې حال کې چې په مېدان کې دا شمېر نور هم کم شي ، لکه چې په لشکر حسیني کې یې چې بیعت کړي شوي کسان ( اتلس زره ۱۸۰۰۰ ) وو ، مګر یوازې (۷۰ اویا ) کسان وو چې کلک پاتې شول ، [ البداية والنهاية ، ابن كثير ، ۸/۱۶۳ ] ، په داسې حال کې چې له امام مهدي علیه الرضوان سره د بېعت کوونکو شمېر به ۳۱۳ وي ، نو د شمېر لپاره به د څومره ضرورت وي ؟

دغه شان امام زید بن علی بن زین العابدین بن الحسین رضی الله عنه کله چې هشام بن عبدالملک د وتلو لپاره مجبوره کړه ، نو د هغو کسانو شمېر ( ۱۴۰۰۰ ) وو چې بیعت یې کړی وو او په جومات کې یې ځانونه په رسیو باندې تړلي وو ، خو یوازې ۱۴ کسان قائم پاتې شول [ البدء والتاريخ للمقدسی ، ۱/۳۴۲ ] د وحې له زمانې څخه د فاصلې له امله ، په دې عمر کې ، ایمان ضعیف شوی او بزدلي زیاته شوې ده ، خو دې ته په پام کولو سره ، د ۳۱۳ تنو د پوره کولو لپاره لا هم ( ۳ لکه ) کسانو ته ضرورت ده.

په داسې حال کې چې د امام سدي په وینا د طالوت د اصحابو شمېر ( ۸۰۰۰۰ ) وو ، خو له پرله پسې ازموینو او سختو وروسته د هغوی شمېر ۳۱۳ پاتې شو ، لکه څنګه چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې د خلکو مثال د اوښ په شان دی ، او ډېر لږ اوښان د سپرلۍ کار ورکوي.[ رواه البخاری ]

د پورتنيو نصوصو په رڼا کې د نړۍ علماؤ د ۳۱۳ شمېرې لپاره شپه او ورځ سترياوې وګاللې ، نو شايد مشکله ده چې هر عالم دا شمېره پوره ولري ، په داسې حال کې چې د امام مهدي عليه الرضوان ته د تللو له پاره په حديث کې د دې علماؤو په لاس د ۳۱۳ کسانو د بيعت يادونه شوې.

راشئ! د دين د نورو جماعتونو په شان ( علم اشراط الساعة – يعنى د قيامت نښې ) ته په زړه کې ځای ورکړئ ، او خپل غوره کارونه جومات او مدرسه او دين د مهمو برخو سره د زړه په خوښې ، د ايمان په جذبه او د يقين په طاقت سره دغه ذکر هم ولولئ او درس يې ورکړئ. نو چې د خلافت په قائمولو کې زمونږ هم ډېره برخه وي ، او د آل بيت له کور څخه د امام مهدي عليه الرضوان د حکومت د جوړولو د هلو ځلو په نتيجه کښې د کوثر په حوض څخه راته د رسول الله ﷺ په لاس مبارک راته جام نصيب شي ، او که د الله تعالى خوښه وه نو د دې ستر کاروان ملګرتيا هم به ميلاؤ شي ، د دې ارمان د پوره کولو لپاره د شپې د الله تعالى يادونه ، په ورځ کې مهدويت ته رابلل ، د زړه ارمان ، د زړه سوز ، د سينې غم ، د امت درد ، يووالى او د معاشرې له بديو څخه ځان ساتنه ، د اکابرينو سرپرستي ، د اجماع امت خاطر ، او د نصوصو تطبيقي فکر ، د ټولو موجوده ديني کارګرانو ترمنځ يووالي ، او د يووالي لپاره فکر ، د عاجزۍ دوام ، د ځان او مال له مينې څخه ډډه کول ، نبوي اخلاق ، کفارو او منافقانو څخه کرکه ، د حق د علماوو ملګرتيا او ذکرونو باندې دوام دا د دې کاروان لومړي کارونه دي ، د دې لپاره چې تقوى او له ګناه څخه ځان ساتل مهم او اساسي برخې دي.

## امام مهدي، او د امام مهدي د انصارو فضائل او ځانګړنې:

د امام مهدي عليه الرضوان د انصارو د فضيلت په اړه ډېر احاديث روايت شوي دي ، چې ځينې لاندې ذکر شوي:

**<u>پېژندنه:</u>** د امام مهدي عليه الرضوان انصار په حقيقت کې د دين انصار دي ، نو د امام مهدي عليه الرضوان په زمانه کښې هر څوک چې د دين لپاره کار کوي هغه به د امام مهدي عليه الرضوان مددګار وي ، ځکه چې د دين مددګار به د امام مهدي عليه الرضوان ملګرى وي.

په همدې ډول د دين په کار کې هم هغه څوک چې تر ټولو ډېره ستړيا او ستونزه ګالي هم هغه د ډېر اجر مستحق دى ، هم دغه شان د امام مهدي عليه الرضوان په زمانه کښې د دين لپاره چې څوک زياته ستړيا ګالى ، هغه به ډير د نصرت مهدي حقيقي مستحق وي. لکه ژوند ، مال ، وخت او عزت د دين لپاره مصرفول ، او د وخت د ضرورت سره سم د دين د ضرورت لپاره قرباني ورکول د اجر او ثواب سبب دي ، همدا ډول د امام مهدي په زمانه کې هم د زمانې له غوښتنو سره سم د خپل ژوند ، مال او وخت مصرف کول ستر خدمت دى.

لکه په عامو حالاتو کې جهاد چې څنګه تر ټولو سخت کار دى ، او د کفر په مقابل کې ودرېدل ، له دښمن سره مقابله کول ، په ځانګړې توګه په اوسنۍ زمانه کې ، د کفر له وېرې نه ويريدل ، بلکې نورو ته د کفر د ضعف او د اسلام د عظمت درس ورکول ستره جګړه ده ، چې د چا شهسواران پر مخ ده زمکې د دين د اوچتولو لپاره لوېې نذرانې ورکوي ، دا د دغې ښاغلو کار دى چې دوي لکه څنګه د ټولې نړۍ کفري نظام چيلنجه وي ، او نړېوال کفر په حقيقت کې د دجال نظام او د دجال استازى دى ، د دغه ډول نړېوال کفر په مقابل کې د

خلافت د نظام د راوستلو لپاره د ټول امت مسلمه متفقه رهبر یعنی امام مهدي علیه الرضوان چې په حقیقت کې دجال او دجالي نظام به ختموي ، او ته هم ورسره ملګرى شه. او د ملګرتیا لپاره ضروري ده چې د امام مهدي علیه الرضوان شخصیت وپیژنئ ، او ددې منهج معلوم کړئ ، او وخت یې وپیژنئ او ملګري یې وپیژنئ ، او باور وکړئ چې څنګه الله تعالى د صحابه کرامو په اجماع سره د ابوبکر رضی الله عنه خلافت جوړ کړو ، هم دغه ډول خلافت مهدي به هم د دې دور د اهل حل او عقد ، دنېکو خلکو او مجاهدینو له خوا په مشرۍ سره ټاکل کېږي.

نو په کار ده چې مونږ هغه ډول خلک جوړ شو چې مونږ امام مهدي علیه الرضوان د خلیفه په توګه خوښ کړو ، او د امام مهدي ښی لاس جوړ شو ، او د امام مهدي علیه الرضوان په مشرۍ کې جوړ شوي حکومت کې اساسي کار کولو والا ټولګۍ جوړ شو ، لکه څنګه چې تعلیم له زده کړې پرته نه حاصلیږي ، او لکه څنګه چې د واده پرته ماشومان نه پیدا کیږي ، او لکه څنګه چې له محنت پرته رزق نه ترلاسه کیږي.

همدا رنګه د امام مهدي لښکر له ستړیا پرته نه جوړیږي ، او د امام مهدي ټاکنه هم به له سختې ستړیا پرته نه وي ، له همدې امله ، دا مهمه ده چې مونږ دا زمانه وپیژنو ، او دا شخصیت معلوم کړو ، او د دې لښکر په فضیلتونو ځان پوهه کړو چې د دې لپاره کار کول درته آسان وي.

۱- د صحیحینو په روایت کې راغلي دي: **(کیف أنتم إذا نزل فیکم عیسی بن مریم وإمامکم منکم )** یعني دا څومره د خوشحالۍ خبره ده ، چې عیسی بن مریم علیہ السلام به زما د یو امتي کس تر شا لمونځ کوي ، کله چې عیسیٰ علیہ السلام له آسمانه راښکته شي ، له تواتر څخه دا ثابته شوې ده چې امام به په دې زمانه کې حضرت مهدي وي ، لکه چې حضرت عیسی علیه السلام او انصار د مهدي علیه الرضوان به مقتدیانو څخه شمېرل کېږي ، لکه څنګه چې د صحیح مسلم په روایت کې یې وفرمائیل: **( فینزل عیسی بن مریم علیه السلام ، فیقول أمیرهم: تعال صل لنا : فیقول : لا ، إن بعضکم علی بعض أمراء، تکرمة الله هذه الأمة )** الله جل جلاله په دې زمانه کې د دې امت د عزت لپاره ځینې خلک یې پر نورو باندې مشران ټاکلي دي.

۲- له حضرت ابو سعید خدري رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمائیل: امام مهدي به زما څخه وي [ابو داؤد ، ۴۲۹۰] ، او امام مهدي به په اخلاقو ، اعمالو ، دین او نورو ډېرو چارو کې به د پیغمبر اکرم ﷺ پشان وي.

۳- امام مهدي به په دې زمانه کې د ځمکې له ټولو خلکو څخه غوره وي ، او وفرمائیل: **(فیفزعون إلی خیرهم )** خلک به تر ټولو غوره شخصیت ته په منډه ورشي ، بیا یې نور وفرمایل: **( فإنه المهدي في الأرض والمهدي في السماء )** هغه به په اسمانونو کې هم مهدي وي او هغه به په ځمکه کې هم مهدي وي ، په یو بل روایت کې یې ووئیل: **( ینادي مناد من السماء: ألا إن صفوة الله من خلقه فلانا )** له آسمان څخه به غږ وشي چې په مخلوقاتو کې ډېر غوره فلانی سړی دی[ الفتن ۹۸۷ ، ۶۳۰ ].

**د مهدي صفات او خصوصیات:**

(۱) د شاهین په څېر تیز ، دقیق او په زره پورې دید ، مګر په عاجزۍ کې تر ټولو ډېر

عاجزي کونکی به وي.

(۲) هغوي به د سکون ، وقار او تواضع کې مثال ونلري.

(۳) د حرام او حلال علم او په هغې د عمل کولو سره به هغوي په ټوله نړۍ کې مشهور وي.

(۴) ټول انسانیت به هغه ته محتاج وي ، مګر هغه به هیچاته محتاج نه وي.

(۵) په عمر کې تر ټولو ځوان ، په ذکر کې تر ټولو ښه او د الهامي علم داسي وارث چې خپل ځان ته به علم نه منسوبوي. ډېر متواضع او له حیا څخه ډک شخصیت به وي.

**د امام مهدي د حکومت ځانګړنې:**

(۱) **یرضـی عنـه سـاکن السـماء وسـاکن الأرض** [الفتن ، ۱۰۳۷ ] د اسمانونو او ځمکې اوسیدونکي به له دوي څخه راضي وي.

(۲) ټول امت بـه پـه داسي ډول د امام مهدي علیـه الرضـوان پـه لـور متوجـه شي لکـه څنګه چې د مچیو پاچا د ټولو مچیو حواله او اصل وي. [ الفتن ۱۰۴۰ ]

(۳) په دې زمانه کې بـه لـه عمر بن عبدالعزیز ؒ څخه زیات عدل او انصاف غالب وي. [الفتن ، ۱۰۴۲]

(۴) په دغه زمانه کې به ډېر بارانونه ، مېوې ، فصلونه او مالونه به بې شمېره وي.

(۵) ډېرى معتدل یهودیان به هغه وخت اسلام ومني کله چې د تبریاس په بحر کې د سکینې طابوت او تورات وموندل شي.

(۶) دومره د مال ډېروالي او انصاف به وي چې هر څوک بـه بې لـه وېرې خبرې کولی شي. [ الفتن ، ۱۰۰۵ ]

**د امام مهدي علیه الرضوان د ملګرو فضائل او ځانګړنې:**

(۱) الله تعالی دې د امام مهدي علیه الرضوان مددګار له هرې تیارې ، سختو فتنو څخه خلاصی ورکړي ، ځکه دا ښاغلي به په تیارو او طوفانونو کې د هدایت روښانه څراغان وي. چې دوي به په لاسونو کې د سکروټې نیولو واله وي. په یوه روایت کې راغلي چې د دې امت اولین خلک او د دې امت وروستني خلک تر ټولو غوره خلک دي ، ځکه چې په اول کې یې رسول الله ﷺ دی او آخر کې یې حضرت عیسی علیه السلام دی ، او د منځني خلکو په اړه یې وفرمایل: **(ثبج، اعوج)** دلته او هلته مطلب دا ډول خلک به وي. [ حلیة الاولیاء ، ج ۶ ص ۱۲۳ ]

(۲) د امام مهدي علیه الرضوان ملګري به داسې خلک وي ، هغه په ورځ کې زمریان وي او د شپې به دنیا پرېښودونکي وي.

(۳) هغـه خلـک دي چې مخکې تېـر شـوي دي او نـه بـه هغـه څـوک وي چې لـه دوې وروسته راځي د هغو کسانو فضیلت او درجې ته به ونه رسیږي چې چا د مقام ابراهیم او رکن یماني تر منځ له امام مهدي سره بیعت کړی وي. د امام مهدي علیه الرضوان مددګار او د هغه خلقو په باره کښې چې د هغهٔ سره په فوځ کښې شریکان شوو په اړه وفرمایل:

**( قادة المهدي خیر الناس أهل نصرته وبیعته )** هغه کسان چې د امام مهدي په لښکر کې پـر مهمـو مقامـاتو ناسته لـري ، او د هغـوي مـددګار بـه تـر ټولـو غـوره خلـک وي. ( حلیة الاولیاء ، ج ۶ ص ۱۲۳ ) همدا وجه ده چې په یوه حدیث کې فرمایلي دي: **(اذا خرج المهدي**

**فکن معه من المهديين )** نو کله چې د امام مهدي ظهور وکړي نو د هغه ملګري شئ او د مهدي په صف کې شامل شئ.

(۴) د امام مهدي له ظهور نه مخکې به د هغه ملګري پوهه شي ، نو دا بناغلي به د ځمکې له مختلفو ځایونو څخه داسې راځي ، لکه څنګه چې د اوښ بچی په بېړه او چټکۍ سره د خپلې مور سره په مینه کې راځي.

(۵) د امام مهدي علیه الرضوان ځنې مرستیالان چې مقام یې تر ټولو لوی وي په وریځو کې به سفر کوي او هغه ته به رسیږي.

(۶) د امام مهدي علیه الرضوان په ملګرو کښې به د حجاز او خراسان کسان وي ، چې هغوي به الله تعالی په سمه توګه پیژني.

(۷) د امام مهدي علیه الرضوان مرسته کوونکي او په ملحمة الکبری کي ګډون کونکي د ځمکې پر مخ تر ټولو غوره خلک وي.

(۸) له امام مهدي علیه السلام سره شهیدان کیدونکي به غوره شهیدان وي او له هغو سره موجوده مومنانو ته به دوه چنده اجرونه ملاوېږي.

(۹) له امام مهدي سره شریک خلک عیسی علیه السلام سره به وي ، چې له تاسو (یعنې اصحابو) څخه به افضل وي او یا به په مرتبه له تاسو سره برابر وي. [ الفتن ، ۱۲۱۷ ]

(۱۰) امام مهدي به ځما له نسل څخه راځي ، که تاسو یې هغه وخت وموموئ ، نو د هغې سره شئ ، چې تاسو هم سمه لاره موندونکي شئ. دا خلک به د هند پاچاهان په زنځیرونو کې بندیان راولي ، او الله ج به د دوي ټول ګناهونه معاف کړي.

(۱۱) د مهدي او د هغه پلویان به په ټوله نړۍ کې د اسمان د وربځو په څېر خواره واره وي ، او الله تعالیٰ به د دوی زړونه له یو بل سره جوړ کړي.

(۱۲) نه به د چا په راتګ خوشحالي کوي او نه به د چا په ورتګ خفګان کوي.

(۱۳) په دې لښکر کې به تالقان ( په اوسني وخت کې د تخار ) خزانې وي ، چې د رحمان خزانې دي او دا خزانې د خاصو خلکو دي ، د سرو او سپینو زرو خزانې به وي ، دغه خلک به تل الله جل جلاله پیژني او د الله د دین لپاره به هر وخت ستړیا ګالونکي به وي. [عقد الدرر للسلمی ، رقم ۱۶۷]

(۱۴) له حضرت ثعلبه رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: په راتلونکې وخت کې به د عمل کونکي ثواب له تاسو څخه پنځوس (۵۰) چنده زیات وي.

(۱۵) د امام مهدي علیه الرضوان په انصارو کې صالحان خلک به د هرې سیمې غوره خلک وي ، د دجال له فتنې نه به بچ وي بلکې د دجال د نظام په وړاندې به سپر وي.

(۱۶) او دوي به د دجال په وژلو کې له امام مهدي او حضرت عیسی علیه السلام سره مرسته کونکي وي.

(۱۷) د امام مهدي علیه الرضوان انصار په حقیقت کښې د پیغمبر اکرم ﷺ ورونه دي.

(۱۸) حضرت ابوذر رضي الله عنه فرمایي چې ځما د اهل بیتو مثال په اخیري زمانه کې د نوح علیه السلام د بیړۍ په څېر دی ، څوک چې په هغې کې سپور شو نو هغه بچ شو ، او څوک چې پاتې شو هغه به غرق شي. او هغه څوک چې په اخیري زمانه کې له موږ سره مرسته

کوي او جګړه کوي ، هم هغه داسې دی لکه چې هغه د دجال سره جهاد وکړی. [رواه البزار ۳۹۰۰ ، الطبراني الکبیر ۸۲۵ ]

## د "کورونا" تر ناروغۍ وروسته د نړۍ حالت ته یوه کتنه:

د قیامت د نښو په اړه له مبارکو احادیثو څخه معلومیږي چې د مهدي له زمانې نه مخکې به د نړۍ حالات له سختو اختلافاتو سره مخ وي ، له دې امله به په یو بل باندې ظلم کول به یو د معمول کار جوړ شوی وي ، له دې امله ځان ځاني ډلې ، تنظیمونه ، مذهبونه او فکرونه به وي. د دې ټولو پایله به دا وي چې ورورولي ، خپلوي به له مېنځه لاړه شي او معاشرتي خرابي به روانه شي. له دې سره به د قومي ، ژبني ، قومي او سمتي تعصباتو اور بل شي ، چې دا به په ملکي او نړیواله سطحه د انفرادي او اجتماعي د ظلم او زیاتۍ لپاره یوه بېلګه جوړه شي.

د دې ظلمونو د ختمولو لپاره به د خدای نظام په حرکت کې راشي او په سمندر ، هوا او ځمکه کې به چټک بدلونونه راسرګند شي ، یعنې زلزلې ، د هوا بدلونونه ، د سیلابونه راتلل ، د بارانونه کمېدل او زیاتېدل ، قحط او د الله له طرفه او کله کله مصنوعي طور باندې ناروغې به رواني شي. د مالونو زیاتوالي سره سره به خلک د فقر له سختۍ څخه ستړي شي او یو له بل سره به مات شي ، چې منظم شکل یې قبایل دي ، د ملي او نورو مختلفو نومونو په بڼه راڅرګندېدل به د ملي او نړیوالو وینو تویولو فضا جوړوي. کافران به د مسلمانانو له دې ګډوډۍ ګټه پورته کوي او د نړۍ په کونجونو کې به پرې ظلمونه کوي او داسې دا به یو نړیوال جنګ جوړ شي.

## دامام مهدي بیعت نه مخکې دعلماء کرامو په لاسونو بیعت

نبي علیه السلام وفرمایل: **یخرج رجل من اهل بیتي یقال له المهدي فان ادرکته فاتبعه وکن من المهتدین**(المعجم الکبیر91 )

ترجمه: زما د اهل بیتو نه به یوسړی را ووځي چې هغه ته به مهدي وئیل کیږي ، که ته د هغه زمانه ومونډې نو د هغه اتباع وکه ، او د هغې زمانې په کامیابو خلکو کې شامل شه (**فان ادرکته فاتبعه وکن من المهدیین**) ترجمه: که ته هغه زمانه ومونډی نو د مهدویت پہ دغه قافله کې شامل شه.

دحضرت عبد الله بن مسعودؓ په روایت کې دي (**اذا انقطعت التجارات والطرق وکثرت الفتن خرج سبعة رجال علماء من أفق شتي علي غیر میعاد، یبایع لکل رجل منهم ثلاثمائة وبضعة عشر رجلا، حتي یجتمعوا بمکة فیلتقي السبعة...**) ترجمه: چې کله تجارتونه او لارې بندې شي او فتنې زیاتې شي ، نو پہ دغه زمانه کې به د ټولې دنیا د مختلفو طرفونو نه ، بغیر له مخکې مقررې نیتې څخه ، اووه علماء به راووځي او په هغې کې به د هر عالم په لاس 313 کسانو بیعت کړی وي ، دا ټول به یو بل سره مکه مکرمه کې ملاو شي.

په اوسنۍ زمانه کې دامام مهدي دنصرت طریقې پیژندنه ،د دین د نورو ارکانو: ایمان ، اسلام او احسان سره سره د دین اهم رکن دعلاماتِ قیامت د ماهرینو په نوراني ډله کې شاملیدل دي ، چې دهغوي اصلي مقصد دامام مهدي په مشرۍ کې دخلافت علی منهاج النبوة قائمول دي. (نور کتلو د پاره رجوع اوکی)[https://t.me/kunuzaltaaliqan313]